# دغازیانو په صحراکی

داقطعه شعر می ننگرهار ته په لومړی سفر کی چی په هغه وخت کی زما دژوند تر ټولو نژدی ملګری شهید ادم خان او شهید رسول خان په شهادت رسیدلی ؤولی ؤ.

دغـازیـانو پـه صـحراکـی
داسی لیری شان میره وه
دتورغر په کینه خواکی
لرو بر په کی پیـره وه
لرو برخو ر ننـګر هـارؤ
دجهـاد پـکی دیره وه
دزیران کندو په شاکـی
دویـارونـو تـذکره وه
دتورغرپه کینه غـیرګی

داخـــادي مود ښـــادي شه
چـــي په ســـرمـــــو دي ولاړي

* * *

تاسي سر کيښوده سر شوي
په خدمت دخپل ددين کي
دابـــري مـــو مـــبارك شه
اوس به گرځي په علين کي
شهـــامت او شـــجاعت مو
نه ځائيري دي عرين کي (١)
تاريـــخ فـــخر کاچـــي نومئي
ستاسي ليك شو په جبين کي
راته وائـــي څه مـــوکـــم دي ؟
دعظمـــت پدي کبـــين کـــي

د پاك زرو هديره وه

* * *

زمكي لاندي باوروكړه
درناوونورپه شپول كي
لاهماغه مست غازيان ؤ
راتول شوي يو كهول كي
چاسپيري ځپلي پښوي
څوك ږخښ پخپل پكول كي
تا بــه وي مجاهد ين دي
دمه شو ي په كوم قول كي

* * *

چه زانګو ئي دجهادوه
زنګو لي ننګر هار كي
په تورغراو په سپين غر كي
په سره رود اوچپر هار كي
چي هيبت ئي جلال كوټ ؤ
رانيو لي په كنار كي
هغه واړه اتلان چي
كيملين وه تري په دار كي

سره تهول دلتــــه جـــر گه ؤ

دبرمـــو نـــو په مـــزارکـــي

* * *

نـــه پـــو هيـــوم هلته څه وه

هـــرڅه وخـــو بـــل جهان ؤ

تهول گروپ دلتـــه د يـــره وه

هم معاون هـــــم قوماندان ؤ

دلتـــه لوړهــــــمت ويــده ؤ

پـــروت پخپــــــله ادم خان ؤ

دي خـــوا ،بـــي ريا غـــــــازي

رسول خان مـــــرد ميـــدان ؤ

* * *

ماويـــــل ورته مـــــــــلكروا

مـــونزيو پاتـــي تاسي ولاړي!

نـــيـــك نصيـــبونن په تاســو

دي آبـــــــادي دغـــه شـاړي

مو نړته پاتـــي په ميراث شوي

ددي ملـــــك وراني و يجـــاړي

تاســي لاړي آتـــل پـــاتـــي

دنيـــاگي ته هـــــكي غـــاړي

# زمـــا عهد

خدایـــه هله به دژوند په خوږوښادشم
چې واصل دشهـادت په لوړ مــرادشم
ماد نفس دبنـد گی وژغوره خـدایـه !
چـی دټـولو غــلامـیونه آزادشـم
داونه کړی چی طاغوت ســره پخلاشم
اوکه نه دطاغوت مخکی به برباد شم
جادو گر داقتـدار تـه مـی مه سپـاره
داسی نه چی پرده پوښ دکوم شدادشم
شهـرت نه غوارمـه ربه ته خـوو کړی
چی نوم ورکی سپـاهی ددی جهـاد شم
په کړو وړوصفو کی می زړه تنـــگ دی
مــو ربه کــله پـه خوږوداتحـادشم
دامی عهـــددی مولا خوته مـی پالـه
دظـالم سره به تیر تر خـــپل مفـادشم
پیښور سنبله ۱۳۶۳

## فناغواړی دوزخیان زمونږ

چی وعدی ئی دډوډی پرون کولی
په پټی کی غنم سوزی نن رو سان زمونږ
چـــی دکـــوراو دکـــالیـــو تیـــکدارۇ
هغو کورکړ په بمو نویاندی وران زمونږ
نوردسبه گاونډډلاپو به ئی څه وایم؟
په دوستی دو ستی ئی لوټ کړدین ایمان زمونږ
نورمی څه پو ښتی دروس له ظلم زوره!
په برچو باندی قلم کړل ماشو مان زمونږ
هر څه وائی گوره نوم دکمون مه اخله
چی په کانگو باندی ستړی شو وجدان زمونږ
چی ئی نن په کابل وینی کمون ندی جهنم دی
تړی فنا غواړی سل ځله دوزخیان زمونږ

## دبیلتون پو ښتنه مه کوی

زرجلسی می نغدی دلته هلته مشوری کوی
کارئی گډوډی ده دپریکون پو ښتنه مه کوی
یو لك تماسونو می کو نجونه هم لاستـــړی کــړل
وران به داتنظیم کړی دلسون پو ښتنه مه کوی
شمیردتنظیموکه غواړی ورشی مرورو ته
مـانه دااحـــزابو د لنـــگون پـــو ښتنه مکوی
پریکړی فیصلی می پسپسکو ته سلام کوی
مانـــه په جلسو کی دگډون پو ښتنه مه کوی
دلته دو لتونه ثرو تو نه لاس په لاس گرځی
زمکی پـــیژندلی دقـــارون پو ښتنه مه کـــوی
ورکړه لږ باورچی بی له تابه څوك رهبر نکړم
نور بیاددننه او دبیـــرون پو ښتـــنه مه کوی

لس لری نفره وائی لـــس واړه معـــاش لری

شـــکراتحاددی دبیـــلتون پو ښتـــنه مه کوی

وائی په کو ته کی چی زمونږ خبر همدغه ده

هر څه می چه وویل دصـــالون پو ښتنه مکوی

غټ بالبنت ترسر کړی دلته شپه دتنظیمونوده

غواړی چی تنظیم دسبائون پو ښتنه مه کوی

ډیر می امیران دی هریوډیر اوچت مقام لری

گوره په هغـــوی کی دمادون پو ښتنه مه کوی

وائی سل په سلو کی خالص اسلام به پری نږدم

مانه دوحدت او پیو ستون پو ښتنه مه کوی

بل وائی راتهول شی تبنتیـدلو عیاشانو ته ول

خرڅ کړی داملت نوردپاڅون پو ښتنه مکوی

بل وائی تنظیم زمادژوندپو له پتهی ده اوس

مااوگـورنی نه مـی دبرخو دویشـون پو ښتنه مه کوی

دامی دخپلو انو دمه ځای دی پکی یوبسیا

مونږنه درمی اوهم دشپون پو ښتنه مه کوی

# خندوی به خلك په ځان وایه ترکومه

لاندی قطعه شعر می په پیښور کی دجهاد پر ضد دولی خان دسپکو سپورو په ار تباط د۱۳٦٥ کال په اسد کی ویلی ؤ.

خانه! ئی به داسی خان وایه تر کومه
شپیلوی به خوار پټهان وایه تر کومه
داسی سل رنګو کی رنګ ګرځی په څه ته
پټهوی به داسی ځان وایه تر کومه
هم ئی وژنی هم یی کنځی داڅه حال دی ؟
تخنوی می قاتلان وایه تر کومه
دپښتو ترنامه لاندی روسان پالی
غولوی به افغانان وایه تر کومه
پښتانه چی ئی رو سان په ظلم وژنی
هڅوی به پری رو سان وایه تر کومه

دخانی او سروجندو سره تضادوی

غولوی به ته خپل ځان وایه تر کومه

دپښتو شمله دی خرڅه کړه بې ننګه

ترې سر په سره الوان وایه تر کومه

زه خو بیاهم مسلمان پښتون میلمه کړم

ته کنځی می په دی خوان وایه تر کو مه

کله وائی په کابل کی کراری ده

پټ سکونډی می یتیمان وایه تر کومه

کله وائی جنګ دروس او امریکاده

سپکوی به میرویس خان وایه ترکومه

کله څاری ته خیبر وسروفوځوته

ورانوی به پاکستان وایه تر کومه

ماچی وژنی هغه ټانګ ته د لیری

ورشندی به سره ګلان وایه تر کومه

دادی څرنګه پښتواو هم خانی ده

خنـــدوی به خلك په ځان وایه تر کومه

دانګریزپه شان به روس هم په ملامات کړم

سپینوی به سره روسان وایه ترکومه

# بسم الله الر حمن الرحيم

زه دی خوروورو پانوباندی پدی خاطرمقدمه نه لیکم چی دا دشعریوه مجمو عه ده ماته که شعر په فنی او تاریخی لحاظ پیرارزښت هم لری ولی خدای شته چی زماا نګیرینی ددی یوپوری هم دومره پیو ند نلری چی ددی مجموعی لو ستونکی فکروکړی چی پدی رساله کی به څه وی او هغوی به ددی محدودو پانو په هنداره کی یو نیمه خوا او نامراد شاعر پیدا او وپیژنی بلکی خبره ددی هم پیره ژوره ولی پخپل واریپیره سرسیرنده ده هغه داچی ددی مجمو عی لو ستو نکی فقط دو مره پوه شی چی دافغانستان دتاریخ پد ی ویارمن اوخوږمن پړاو کی دلیکو نکی فکری اوذهنی مشغولااو دهغی جهت اولوری څه و؟ بیاراته لکه دخپلو زخمی احساساتو دامهمه نده چی ماخپل فکری انګیرینی دتعبیراوادب ددنیاګی په کوم موداومودل تر تیب کړی او پد ی رابطه دل ستو نکی نیوکی اودشاعر په رابطه دهغه پیرزوینی څه دی ؟

په هر صورت دغه رساله اوانګیرینی زما دضمیراو و جدان

چی پښتون وی دغلیم پلوی نه کا

ته به ژاړی غلیمان وایه ترکومه

خانه بس کړه نوردقوم سپکه مه غواړه

شرموی به خپل یاران وایه ترکومه

دببرك په یارانه روس پښیمان دی

ته ئی بولی جان جانان وایه تر کومه

داسی و گڼه چی روس ماتی خوړلی

وی به پاتی په میدان وایه تر کومه

راشه قوم سره ودریږه وخت لاشته ده

نه پو هیږی پخپل زیان وایه تر کومه

داسلام او دپښتو نه تښـتی ولی

څوروی به مسلمان وایه تر کومه

پیښورا سد ۱۳٦٥

# دادجم کیسه

لاندی ټوټه شعر می دو لی خان کو کی خیل دبی هدفه
مقاو مت په رابطه دخیبر یانو دپاره ویلی ؤ.

مه می ویره وی اوس زړه شوی ده دغم کیسه
سنه می په غمونو کی زده کړی ده دزغم کیسه
ډیر می ورته ووی چی کوږیار منزلته نه رسی
مړه شوه په فکروکی دادسم او دناسم کیسه
ډیر وغولیده خو بیچاره انسان غو لیږی لا
زوړشو داانسان خو زړه نشوه دآدم کیسه
پرون چی لاري بندی شوی دکوراوزه په بام ختم
خپله راروانه شوه دبام پسی دبم کیسه
وران شو لاوړانیږی نن کابل او جنګ تړلی دی
ختم شول هرڅه خو نه ختمیږی دماتم کیسه

نه اخلی خیبر زماد ځړیکو نه عبرت ولی
رو غو ته بی خو نده وی رښتیاچی دمرهم کیسه
گوره چی باورنه وی دجنگ خبری گرانی دی
دلته نه ځائیږی ددینار وددرهم کیسه
داهغه پیسی دی چی جگړی ته پکی وهی
هسی سادگانو ته ښکاریږی دحاتم کیسه
تښتی له بارانه ځی ناوی ته چی وچ پاتی شی
جوړ به بل کابل کادرته خلکه دادجم کیسه
بس ده چی کابل ئی په لمبو کی نن تنها سوزی
مه راوړی خیبرته دادخلق او د پرچم کیسه
جنگ ته وسیدل اوبیادقوم سره په کار نه دی
مړه شوه په کابل کی دتر کی دکرم کیسه
تاب دبقا نلری دلمر په پلو شو کی خود
شپی وه جوړه کړی په تیارو کی دشبنم کیسه

# بو لهب پیژنی

ماته ئی وی چی بو لهب پیژنی ؟
ماوی په دی عصر کی ځان چی وینی
وی چی کیسه می دازغو کو له !
ماوی کرلی خپل ځو ځان چی وینی
وی چی عجیبــه زمانه غــونـــدی وه
ماوی گټ مټ دغه دوران چی وینی
وی چی دکفر څوکیسی کو مه
ماوی سئی ده ستادژوند کیسه ده
وی د مکی دسر کشانو می وی
ماوی دستا دکوردخوندکیسه ده
وی چی بی رحمه زمانه غوندی وه
ماوی ددی وقت ظالمان چی وینـــی
وی چی دکفرپه تیاره محیط کی
مــاوی خــبره ستادکــورده مــنی!
وی چی بو جهل .ولهب څه و کړل
[illegible]ری د[illegible]ری راړو ځای [illegible]رده منی

وی چی آخرځنکه رسواغوندی شول

ماوی انجـــام لکه دځـــان چی وینی

وی چی دحق په وړاندی دمره عناد!

ماوی ځـــان دی پری د پاســـه گوره

وی عاقـــبـــت گوره دخپو ولویـــدل

ماوی انجام دی خـــپل خناسه گوره

وی چی دتـــورو ورځـــو تـــوریادونه !

ماوی تیاری دخپل وجدان چی وینی

وی چی دتیر عصـــر داحـــال گـــورمه

ټول تعصـــب او ټول ضـــلال گـــورمه

ماوی چی ستا ځیری اوکړوته گورم

پروت دتزو یر پری هغه جال گورمه

وی عاقبت خپلو لمـــبو کی و سول

وی می دا خپل آتشپـــشان چی وینی

## مطلب اشنا

مړاوی ګل په لارکی پروت وه
دهر چاتتو ځپلی
نه نینه وه نه مو سکاوه
دنظر نه وه لویدلی
نه بو ستان وه نه وږمه وه
په ګردو کی ړو غیدلی
نه دښانګی په سرناز وه
نه دچا په سر تومبلی
هسی بل شانته د وران وه
دمرګونو کورته تلی
ماویل شهزاده ولی ؟

شولی داسی اسکیرلی

شهریار دګلستان وی !

دملیاردامید څلی

ته د څانګی دسرنازوی

دخوبانو نازولی

پرون باغ ته ،ننداری ته

درروان وه کوروکلی

چادلیری تماشاکړه

چاسپړمو ته وی نیولی

نن په لار کی هسی پروت ئی

لکه پروت وی خس وخلی

نه پو هیږم کبر جن وی !

دزوال وخت دی راغلی

او که سترګودفلك کی

نه ځائیری هر یو سکلی

یادخوارملیارښیری دی

تائی پاس نه و ه ساتلی

یادبل په سپکه خوښ وی

د تقدیر لاسوړتلی

نه پوهیږم څه کیسه ده؟
ستاپه حال یم دردیدلی
د پتمنو بی پتی څه
داسی دیریم څورولی
مړاوی گل غړاو سلگی شو
راته ویلی وخت ده تلی
مرکی او جرگی پرېږده!
غړاو غوږشه راته غلی
زما دی توری ورځ ته گوره
تور ماشام ئی شر مولی
داسی زمانه عبرت واخله
که عبرت شی اخستلی
چاچی لاس مطلب آشناته
یو ځل ورکړزره ترلی
نوردی زما په څیر له ژونده
کرار کینی لاس منځلی
ماوی کته مته مړاوی گله

ستا په شـــان دی کړیدلی
دافغان هغه نهضت چی
مونږ په وینو وه پـــاللی
چی هر چاته ئی لاس ورکړ
تری نه پـــری کـــړان ولی
صبر صبرمو په خدای شه
هم رحیم دی هم غښـــتلی

## میر غضب ته!

دادقهر میرغضب ته
چی وهل او تکول کا
دبدغونی زړه خاوند ته
چی ځپل اوهم وژل کا
دادسروسترګوخښتن ته
چی دوینو اورول کا
دادکبر کاږه ښاخ ته
چی انسان ته سپک کتل کا
دچوکی مست لیونی ته
چی په ځان او هم پر بل کا

هغه چاری که خبرشی
دژوند ون به لاس په سرشی
که ئی وویني یو ځل ته
ته اوتر به زما بترشی

بیا دانقلاب پدی وپارمنه مرحله کی هغه بی الایشه او معصومانه

انعکاس دی چی ماته دبل هر چانه قیمت لری او بیاداچی زما ماشوم (

دتجربو نه گوښی) فهم اواعتماد او داسلام اووطن په رابطه زما انتخاب

کړی ایډیال سره داسلام اووطن لویدلو دښمنانو اودهغه نه اوخوا د لیاری

ملگروڅو مره دغلاو چل خبره په مخه کړی وه؟

دغه پټ زگیروی او ساړه او سیلی دی چی په د ی رساله کی زما

دځېلی احساس او لوټ شوی اعتماد اندازه ښئ .

ښه اوبد ددی (پیغور)ماپوری مربوط دی اوزه هم ددی جهاد او

مقلومت دابتدائی او کمکیو کړیو پوری.

نو ځکه دلو ستو نکی څخه هیله من یم چی په قضاوت کی لکه زما

دشعری انگیرنوپه ډول داحتیاط او مراعات جانب په آسانی پری نږدی .

په پای کی باید ووایم چی د(پیغور) مجموعه پوره یو کال داتحاد او څلور

کاله دحزب په فرهنگی کی دسانسورسورانتظاروخوړله ، دپاتی او

اوراقوپه دفتر کی ضائع شوی برخی می ددی ځای او هغه ځای نه را

پیدا ترڅو دورکړی پیغورپه یاد یاد پاتی شی

البته دیادونی وړده چی ددی مجموعی یوه برخه دهدف دجریدی

لخواپه نشررسیدلی اوځنی نورمی پدی وروستیوورځوکی ورزیات کړل.

(مزمل)

وایم هغه په زړه ډك ته

چی نیولی لو ئی لیاری

څوك په غابښ چیچی له درده

په څو ځایه په څو واری

تری خوندی چی هیڅوك ندی

ټول ملت و هی کو کاری

دهر چاړزگی ده زخم

وهی وینی تری نه داری

بلاکو ندی گوره ژاړی

څه به پو شتی زما وراری

که خبر زما په محشرشی

ته به هم په سلگو سرشی

دویر ونو شو گـــــیره ده

دهر چا کره چـــــی ورشی

ځکه بیاوایم له سره

دادقهر میرغضب ته

چی کتاب لری دحقد

څو ك دی نه درځی مکتب ته

پرناحـــقه چـــی روان دی
هڅوی می اخـــو دب ته
کلـــمه چی دخـــدای وائی
په همـــاغو نه ئی لـــب ته
په زینـــــــه دکـــــکریو
رسوی چی ځان منصب ته

گـــوره نه چی در په درشی
پـــه گـــرفت داللـــه ورشی
دهغــــو چـــــی تـــاوژلی
لابـــترخاوری په ســـرشـــی

چی امـــام دخلـــــکو نــــه ئی
دهـــــمه ژگیــــــلمـــــن ئـــی
څوك ئی کنـــڅی څوك وژنی
په خوله خام په زړه خوږمن ئی
ســـیال خلـــك گڼی کـــم ته
ته په تو لو کی یو مـــن ئی

چی دبل په مد حه سردی
دهمـــــه ژته دبنـمن ئی
ځکه خلك درنه څنگ کا
چی په هرڅه جگړمن ئی

دامت په کا رچی ورشی
هم امام هم ئی رهبرشی
نود ځان بند گـی پریده
چی په لاره دعمـــرشی

راشه نوی باب شروع کړه
دادتاج هوس ته شاکړه
دغه ورونه دی چی کنځی
تول په مینه خواپه خواکړه
دادجاه ســـفردی پـــریده
په اسلام دی ځان ملاکړه
پادشاهی خدای لره ښائی
بنـــلویـــس دی دعقبـــاکړه

که خبرئی له خطرشی
نه کسرا نه به قیصرشی
ددوه کسو به دنیاکی
نه مرشد اونه رهبرشی

لوئی پریده سم بنده شه
ستا په شانی معتبر ډیر
هسی ولویدل په خاورو
آبد غونی زوروړډیر
نه مقام او نه ئی نام شته
لاړل هغه حیله گرډیر
ته دنورونه څه زیات ئی
که دی زیات دی مروړډیر
هغه ځای لره به ورشی
هم به داسی رنگ اوترشی
چی بی زوره مظلو مانو
سره یو شان برابرشی

# د ملت خبري مکړي

په نامه ئي چي هرچاتجارت و کړ
دي ملت ته دملت خبري مکړي
دعزت په نوم ئي سل ځله ذليل کړ
وهغه ته نورد پت خبري مکړي
دجنت په تمه ئي سل دوزخه دل کړل
دي ملت ته دنعمت خبري مکړي
نابېره مو په سل ځا يو نوخرڅ کړ
نورهغه ته دحريت خبري مکړي
سل لويدلي ئي لانورپه اوږو خيژي
دي مظلوم ته دهمت خبري مکړي

## روس چې سيل دکابل کا

دابرلين نه دي کابل دي
رو سه فکر خيال بدل کا
خپې خپلې سر ئي زمونږوي
څوك چې زمونږ آزارول کا
خداي ئي مخ زمونږ په خواکا
دمرگ خوا ته چې منزل کا
خو له ئي ماته سر ئي غوڅ شي
چې له مونږه سره چل کا
دلوئي ستوري ئي پريو ځي
دخندا په ځا ي ژړل کا
چې په کمه را ته گوري
ننداري دخپل اجل کا
اوس دبل استعمار وار دي
روس په کور مي چه غو بل کا
دانگليس په حال به پوه شي
روس چې سيل دکابل کا

عقرب ١٣٦٤

پيښور

# ګډوډي

ټول ترکستان سترګي په لاره وه چي ته به ورشي
ته پخپــل کــور بي ځایــه اور دانـــتقام و خوړي
ماوي کمون نه بــه سنګرغونـــدي دفـــترو نیسي
په نیمـــه لاره دګــډوډیــو تــور نظـــام و خوړي

# لوي ئي مکري

په جـهان کي به وي داسي بختـور څوك
چي دشرمـخي ته او ځي په اشـر څو ك
دفسـاد مخه په عـذ ر نيـوه نـه شـي
داد جيـنـكي خولي كوي كله ادرڅـوك
دتسلـيم ذلـت تـه كـله چمتو كـيږي
چي شي گرم دخوږي په تود سنـگرڅوك
لابه لو يـږي دفـــساد پـه كام كي خپله
چي و نكړي دطاغوت سـره ټكر څوك
دزور گو يو چي صفت كا خـپله اوږشي
لوي ئي مكـړي چي لري دغه هنر څوك

# يه د مرګ تجاروبس کړي

يه د مرګ تجارو بس کړي
نوربه ستړي وي په شمارهم
که ژ غيږ هم دو مره بس دي
که سوداو که قمار هم
په ملت مورحم و کړي
کوري آه لري آزارهم
کريملين چي ئي سلامي کړه
رنګ ئي نظم شوشعار هم
سپکوي يارانو ولي ؟
هغه کيري او دستارهم
آ، اسلام چي و يه تاسي
کله مور او کله پلار هم
نن په مغ ستاسي څپرخوري
ديتيم په شان ګذار هم
داپه کوم لور چي روان ئي
نه اسلام شته نه يي لارهم
داپه ځان او هم په مونږه
خندوي ځله کفار هم
يه در نو مشکبنو بس کړي
کوږ عمل او کوږ ګفتار هم

پېـــیل خـــبره داســـــلام و ه
پـــاي ئـــي ستـــاسي واكمني شوه
پـــه خـــوله غږ دحـــبل الله ؤ
پـــــه عمـــل كي ځـــان ځــاني شوه
څــــه وعـــدي دخــلافــت وي
آخــــر سـپكه سلــطاني شـــوه
كــفر اســلام مــــو سره گډ كړل
ضــائع تـمولــه قــر بانـــي شـــوه
پــه كفـــارو كـــي خپل پـالي
څـــه ورســـته مــسلمــاني شــــوه
به مـــخالـــف لوري روان ئـــي
خــود بیـږي مــو طــو فــاني شوه
په پــیري مــو پار سا وروند
تقـــوي كـــمه لــــه ځـواني شـــوه
دجنـــت دوره پــه خـوله كي
در تــه پیـــسنبه ستو مــاني شــــوه
كه همـــداسي مخـــكي دروهي
دیـــن مـــو لاړاواعتـــبار هـــم
يه د مـــرگ تجارو بس كـــړي
نـــور بــه ستړي وي په شمارهـــم

# د لطف انتخاب

چـــي انسان دي زه دلطف ا نتخاب کړم

دنعمت به دي په کو مه خـوله حساب کړم

تـــابهـتر مقـــام دواړومـــاتـــه را کړ

زه عـــاجـــزدي دملـــکو هم رکاب کړم

کائنات دي په خدمـت زما کـــي راکـــړل

زه لائق چـــي دي دعـــجزدمـحـراب کړم

سيـــادت ددي نـــړي ماتـــه تـکـــيه شـــو

دمشري په امتحان چي دي کامـياب کړم

نااشنا محيط دڅـــان سره اشبـــناکړم

وابســـته چـــي دي دمـــهر په تـناب کـړم

هـــله پـــوه شـوم په اسرارودخلقت چي

تـــابـــسيا په معـــرفت دخـپل جـــناب کړم

چي دي کور تـــه وبلــــلم وردي خلاص کړ

څه حاجـت دي چـي دبـل دردق الباب کړم

نصیحت دهغو نږه آوري
په رتبه چې در نه کم وي

چې موږه وي خپل منلي
فرض ئي بولي که محرم وي

دچي مو خو ښ ئي، نوخالد شي
که څه هم سپك كلم جم وي

پلوي چې ستاسي نه کا
مسلمان لکه پر چم وي

یه بې درده وروڼو څو به
تاسي سم او نورناسم وي

بقدرت هوس مو کم کړي
دابه ستا سي لوي کرم وي

لږ په صف کې دملت شي
خود خواهي سراسر غم وي

دچو کیو په تقسم کې
به تر څو دغه ما تم وي

اقتدارته رسید و ته
د ین به څودستاسي چم وي

لږ څه بیر ته نظر و کړي
شي به تیر دستاسي وار هم

په دمرگه تجارو بس کړي
نور به ستړي وي په شمار هم

آخرغواړي څه نیکبختو
چي و هي مفتي ککري

چي نه خپله سره جوړ شوي
نه دبل مني خبري

ور کاوي چي دچاراشي
خود به کړي داسي و نزي

کبریاڅ چي له ویریم
پرون پري شبودلي بیري

پخپل کور کي مو ځاي نه ؤ
له نژدي خوښ وي په لیري

چاپیو ګام کړه داګام لار •
څو ك راواښتل په تري

اوس نخري دپاچاهي کړي
ورانوي سمي خبري

نه ئي کرم څکه مغروور
درسره چي دي لښکري

مکرواوري په وطن مو
چي بل کړي اوردسري

دابه پاي سوزي دتاسو
پکړي ګاني برجوري

دفه وروځ به مــو پردي شي
ورسره ستاسـي بازار هــم
یه دمرګ تجارو بــس کړي
نوربه ستړي وي په شمار هم

پیښور ۲۰ میزان ۱۳۷۱

## په دلويو فتحو برمه

په افغانه مجاهد ه ته پرون چي په قيام شوي
په جهاد اوسر ښنښنه ته دواړو ورامام شوي
خوچي جام داقتداردي نن ترګوتوشوه عزيزه
هدفونو ته دي شا کړه هوسو نو سره جام شوي
ته پرون چي خپل ملت ته داپه بده ورځ په کارشوي
په افغانه مجاهده دملت خپل افتخار شوي
دشهرت هوس اسير کړي چي دي قوم ته مسي شاکړه
و کرسي ته ناختلي ته بي شهره شهر يار شوي
لوړيد ل دي عجيبه و رالويدل دي تر هغه هم
تر داتولو هدفوچي ته راضي پخپل مقام شوي
جنګ دجنګ دپاره نه وه داپرون چي ته په جنګ وي
نشواتي تلي هر کور ته ورته ګډ ددين په ننګ وي
دصديق په صداقت دي دعمر په عدالت دي
خلك تيرايستل خوپټ ته تول فريب او هم نيرنګ وي
باورو نه دي تول خام کړل حقيقت چي دي ښکاره شو
په اسلام ناآګاه وروره چي وي خام هغسي خام شوي

ماویل وري به تاشکند ته داجهاد او بیداري هم
راژوندي به کړي یادونه د مسلم او بخاري هم
مګر تاچې په کابل کې داسلام سرچینه وکړل
نه دي کړي په تاریخ کې کلیوال او بازاري هم
ته به بل وطن ته څه وري داسلام په نامه وروره !
چې پخپل وطن کې خپله مخالف دپاك اسلام شوي
په اسلام باندي ځان پوکړه پریده چوراووروروژني
دراکو شاته ولاړني څو به کړي ته لیار و هني
وروره کو مي خواروان شوي که جندي دي کړي غلطي
دشهید پیغام همدا وه چې تړي دي ور ته زني ؟
تادکور خوله کې په وینو پرون وساته پیغام خپل
نن دکورپه غاړه ولي ته دښمن دخپل مرام شوي
نن چې ورځ دستا دکار ده واکمني ده اقتدار ده
دامظلوم ملت له تانه نو عدو په انتظار ده
ته دځان او خپلو غم کي هسي پریو تلي ګرم
چې دشاه او شاقلیانو دي بد تره هم درباردہ
نه ئي ګرم که هیروي نن داملت په څیر دنورو
چې دشاه په شان ئي ته هم په اوبو باندي آرام شوي

چي داَب اودعــزت ؤ آدي تهـول خـــپه خپـــه کړل

چي په څه شي دي لاس بر شــو آدي ټول کپـه کپه کړل

تا ته ســــترکي دوطـــــن وي تاته هـيلي دملـت وي

تا خــودااو هـــفه واړه آشـــنا واړه ســرچپه کړل

یه دلــویـــو فتــحو بر مه یه دسـرو لښـکرو مرګـــه

تا ګټـلي نوم بربادکړ لیو ني شوي که سر سام شوي

سلواغــه د ۱۳۷۱ کا بل

## داوختو نه به هم بل شي

مجـــاهده داوختـــو نه به هـــم بل
دشهيد دارمـــانو غـوتي به كـــل شي
هر قدم چي ئي شهـــيد لو يږي په مينه
رانـــژدي به دمقصـــود هـغه مـــنزل شي
دغه شپه به خداي سبا كاورځ به راشي
دغلـــيم داميـدو ځـــراغ بـــه كـــل شي
لكه ورك چي نن داود، ترك ، امـــين شول
ورك به داپردي فو ځو نه دكابل نه شي
ديتـيم ماتـي سلكـــي به غلـيم مات كا
دادلاس وتـي كابل بـه مـي بيا خپل شي

ميزان ١٣٦٠، پيښور

# خلك خام شول

لویـه خدایه چې دچاپسي مـي پـل شـو
که ولې دزمـــاني و مـــاتـــه غـــل شـــو
ماوي کام په کـام به څـو سره بطـحاتـه
یارزمـــاچـــي :........................
تریـــخ عمل ئي دشعار شیـریني دل کـــړه
حلق مي تریخ په بد عهـــدي لکه زول شـــو
مـــاوي واك به ئي آغازدپاك اسـلام شـــي
داسـلام دپـــاره خـپله اوس اجـل شـــو
پـه تـــائـید دغـلطیـو تائـــید اخـــلـي
پدي فکر چـــي ورو ســـتي ژ هــم اول شـــو
فکر ئي نه شـــي زمـــا نه اوړي خـــپل اوړي
بیـــا به ژاړي دغلـــطو وخـــت بـــدل شـــو
ماتـه خـداي رابرخـه کـړي ســست ملـگري
هریـوپـسي چـــي ولاړمـه تنـبل شـــو
زه پري تـیرو تم تر پـــایه نـــه پـــو هیـږم

خلک خام شول او کـه خام زما اتـکل شـو

چي اشخاص تر حده غټ شي قانون لوډ شي

ځـکه اورئـي د نفـوذ دپـاسـه بل شو

چي قـدرت دبد نهـادو لاس تـه ورشـي

ځنـاور کـنه داخـل پـه کـوم ځنـګل شو

سـل مـي تير شـول پرداهـستي پيـلو مـه

نـوي ليـاره شـکاري اوږد زمامـنزل شـو

دپـري سـره پـري خـبره نسيم مـخکي

ځـکه داپـه جـهادو نوکـي افضـل شـو

چي مي دوست دي راته وائي نور يي بس کړه

داخـلاص زمـانه لاړه وقـت دچـل شـو

خـوزه کـله دلويـدلـو سـره لويـږم

چه و ماته خـپل عـمل د لـياري مـل شـو

# خپل کندر چي هیر نکړي

لاړي چي رياض تـه ته گرانه حجاز مخــکي دي
گـوره په غو غـاکي ئي داسـفر چي هـير نكـړي
شـته ده پر يمـاني پكـي رنگ ئـي دفر قـان واخـله
ورك ئي ريالو نه شـه زيرو زور چـي هـير نكړي
كله ملتزم كي چي دوه لاسـه كچـكـول پـه لاس
ودريـږي دنيـازبه دود مـااو تـر چـي هـير نكړي
ته چي دمظلوم ملـت هلـته كي عرض ورانـدي كړي
شـور كي دسلگيودي خپل ټبر چـي هيـر نكـړي
اوښكي دحسرت چي دي ښكتـه پـه گريوان شـولي
سـتا په نـنـگ يـتيم زويه دربه در چي هـير نكړي
لاړچـي شـي حـجـازته ته سپـين داخـرت كالي
واغـونـدي سـبحان الله دااخـتر چـي هير نكړي
ورشـه لرميـناتـه خـو زمـا داسـمعيل ذبـيح
گـوره! په تنـكي غړي تيـزخنـجر چي هـير نكړي
قصـر كـه شـيفر ويني زړه به تري نه جگ ساتي
كړي كـه دجـنـت هـوس داخـطر چـي هير نكړي

اوس دلاس غوتمي په خولي شم خلاصولي

چــــي خاونـــد دي دخـــبرو دخطاب کړم

بي له تـا به مــي ســر تيتږ نه شي هيچاته

په شـعورد معــرفت چي دي ســيراب کړم

جنـــازي داقـــتدارخــــــود په اوږو وړم

چــــي اګـــاه دي پــه اسرارو دکتاب کـړم

دادبل د بـي لـياري پړه خـود پـه ماشـوه

دبهتـر امـت پـه نـوم چيَ دي بارياب کـړم

بـي ايمـــانه که په ســل دره بي آب شـــو

په ايمان دي لـــه همـــه ؤنه پـــه آب کـــړم

تـــارانـــه پـــردي نـــه کـــادادريـــالـــو وطـن
گوره په قصروکي يي خپل کندړ چي هير نکړي
ته پـه عمر خورلس شـــوي پـوه پـه سـواوبدو شه
گوره په هوس کي مـي ژير بشـر چي هـير نکړي
بـدچـي گرځـي هـر يو ئي بيـلابيـل کتاب لـري
مـه خاره پردي عمـل خـپل دفتر چي هير نکړي
سره او سپين دي سرو خوري مه خوره وه سرپسي
ورځ چي دميږو راشي سور سنگر چي هـير نکړي
کلـه که غـوغـاو ينـي جوړه دظـالم په کـور
ناسـت که زما سـر ته وي دااشر چي هـيرنکړي
سـري چي قـهر جني شـي ستر کي دارباب په چا
نيـسه دمظـلومو خوا لند محشر چي هير نکړي
کنـځي مظـلومان پـه تاليـري لـه در بـاره ځـه

................

خيـر که ته خالـد نشـوي گوره چي « ابي» نه شي
ورك دي شي بي ننگه زوي زورند سر چي هـير نکړي
سل دشمـنان دوه کړه خـوکاردي‌ـوه مخـکي کـره
ووهـــه باطـــل مـــگردانـــظر چـــي هـــيرنـــکړي

د ۱۳٦٦ کال

# دشهیدانو یاد

شل به تیر شي سل به نورهم دکلونو په حساب کي
داڅوندي به واره نیست شي دمر کي په انقـلاب کي
نه به زه وم نه به ته وي دژوندون پـه ځـوانه خواکي
نـوي خلـك به وي وروره ددي دهـر په رکـاب کـي
مګـر ژوند او یاد به تل وي دشهیدآشنا که څه هم
په ظاهردخلـکو پت ده دقبرونو په حجاب کـــي

# دپستي ژوند

پـه امیـد امیـد دحـوروډجـنت بـه
تـر لحـده پـر لګـام کړم دمستي ژوند
په اسره داخرت به ئـي فـردوس کړم
کـه هـر څـو شـي ګران دفقر دُنیستي ژوند
نه تـیریږي ، مـه ئي ژوند بـو له «نهاده»
کــه تهـول عمـرمي لحظه شي دپسـتي ژونـد

# ماچي دعاکړه مجاهدته لااسيريم

هوسيان مي دملت په ژوند قمار کا
خلکه ځکه په کابل باند زهيريم
پرنگيان راپوري خاندي چاره نشته
دبي درده رهبرانو سره گيريم
دون همتومي په دين دنيا کړه خپله
زه ساده ئي غوليدلي په تکبيريم
کافران ئي ترخواکړي مسلم وژني
هر يو وائي دا جهاد زه ئي اميريم
که مي وژني ظالمان خو تاج به سرکا
هك ايران دتوجيه گرو په تزويريم
مابي لياري چي ونه سپاري رهبرته
ړولي زه رهبر دخپل مسير يم
دچوکيو دهوس کانه ئي نه آوري
ستړي کړي زه بي ځايه خپل تفريريم
دملحدو عفوه وشوه په کرارشول
ماچي دعاکړه مجاهدته لااسيريم
قبا پوشه ظالمان به هم پرينږدم
هڅولي دي محشرته خپل ضميريم

نه مي ويره نه اميد شته له دي واړو

باوري چي په قسمت دخپل تقديريم

چي مي خاموته ږيا اعتماد ږکړ

بندپه دام کي زه بدبخت دخپل تدبيريم

# اي د قصــــــــه يــــــاره پام کړه

د واورینـو غـرو پـه سـر چي — په تریـخ کام دي قند په شاواي
پــه هــوفیـان او سوختـه زاره — د اوړودي پــنـد پــه شــاواي
د اخستي قرض ....اوچت نرخ — غــم د لاري اومنډ په شاواي
د پیـچـومـي درانـــده بـــاره — د خـــولـــودي ډنــډ شـــاواي
د نــاولي .... اوخـولـي خت — تـــپـــل شــوي کنډ په شاواي
په تش جیـب ....لیري ډاکترته — دي رنــځـور فرزند په‌شاواي
غـم دوزوهـــم بـــهـــرکـــي — دتربور بســخـنـد پـه شـــاواي
يادي بـــي اوبو ســنــگـر تــه — دیـــخـــي برغـــنډ په شـــاواي
کـــوردي دري ځــله هــواروای — بـــي کـوري دي ژوند په شاواي

فـــراري‌يـــاربـــه‌نـــيـــوکـــو
انـــقـــلاب‌تـــه‌ســـپـــوروســـپـــکو
داســـــيژبــــپـــــردینــــوه
دخــــپــــل‌کـــــاپــــه‌بـــدينــــوه

تــه خبــري خلــك جهـــاد كـــا — چـــي وطـــن درتـــه‌ازادکـــا
ولـــي تـــه وربــوري خانـــدي — خـــپـــلـه تیـښـتـه‌دي‌دريادکا
شــوي کـــکري بــلاخـــاوري — چـــي آزاد درتـــه هـــيـواد کـــا
ســرئي لاس کــي دي نيـولي — ځو مـلــت خـلاص د الحاد كا
مجـــاهـــد دي په عـــزت مـري — خداي دي روح دهغـه ښاد کـــا
پـــه عمـل چي تري نه پس ئي — په تـــائـــيـد ئـي زړه ابـــاد کـــا

بشه به حال هم دهغو شه چي حاصل ئي اعتهاد کا
دشهيد زيړي گوني ته ژوندي غبز دزنده باد کا
چي دبل دپاره سر خوري قدريي هر يو ادام زاد کا

اي دقصرياره پام کړه
دي قيام ته احترام کړه
خاوري شوي پري ځواني دي
قيمتي ئي قرباني دي.

۱۳٦۸
سنجد دره پروان

# کابل به مي بيا خپل شي

مجاهده دا وختونه به هم بل شي
د شهيد دارمانو غوټي به گل شي
هر قدم چې ئي شهيد لويږي په مينه
رانږدي به د مقصود دغه منزل شي
دغه شپه به خداي سباکا ورځ به راشي
دغليم د اميدو ښراغ به گل شي
لکه ورك چې تږکي ببرك امين شول
ورك به دا پردي فوځونه دکابل شي
ديتم ماتي سلگي به غليم مات کا
دا د لاس وتي کابل به مي بيا خپل شي

# د وطن د جدائی نه

ستا د شخو څوکو جار شم ، ستا د غرونه سپیلنی شم
خوندی شوی ستا په غیږ یم ، د پردو د غلامی نه
ښکلوی دی هسک غرونه ، د پروین مخ په اسمان کی
می د مهر دی څخیزی د شفق د میناګی نه
د واورین غرو غاړه کی دی ، د شغلن لمر د تیك لاندی
ښکاری پیغله پښتنه ده ، سینه شوی د ښادی نه
درانه غرونه دی جرګه دی ، وائی تره کړی دښمن ته
ګواښ کا وځی پرچمیانو! د کابل د کلاګی نه
یم په تا کی زیږیدلی ، پتیالی به درکی ژوند کړم
سر به ورکړم تیر به نشم ، زه په ژوند د ازادی نه
واورین غرونه دی خندا کا ، د غرور پر یرغلګرو
چی راغلی وتی نشی ، د شکست له رسوائی نه
ستا سیندونه په غوغا دی ، لکه وتی جلوسونه
سره بلا به څنګه وځی ، د ورپیښی تباهی نه
تند بادونه دی شنهیزی ،ته به وائی چت پکه شو
د افغان سترګه نه سوزی ، د بی رحمه بمباری نه
دك په ستورو دی اسمان دی ، ستا فضا ټوله رڼا ده
شپه دی ښکلی ده له ورځ نه ، جار د ستا د زیبائی نه
شغلن لمر دی په اسمان کی، نشه ګوری ته به وائی
میلمنه حوره راغلی، د جنت له دنیاګی نه
شنی لمنی د سپین غر دی ، د واورینو څوکو لاندی
وائی ناوی جوړه تن کړه، د واده له المآری نه
اوبه صافی، هوا صافه، خلك دی لا ترهغه صاف دی
نور به څه وایم وطنه، زه د ستا صفائی نه
په قومو کی دی اوچت کړم، په اسمان کی آوازه ده
ملتونه به رنګ واخلی، دافغان د قربانی نه

کمـون راغـی خـو غـریب ستا، په خوله داسی گوزار ورکی
چـی بـه خلاص پکت دوارسا کړی، نه د نظام د بقالی نه
ورځ بـه را شی چی بـابـا تـه، لـه نژدی لاس په دعا شم
«آبـدره» بـه شـور ځـور شـی، زمـا د عـذر د زاری نه
وران وطـن بـه مـی آبـاد شـی، ترکستان به هم آزاد شی
مـایـوس نـه یمـه ښـاونـده، زه د سـتا د خـدائی نـه
ژونـد مـی خیږ پس له مرگه، ما پخپله خاوره خښ کړی
رنـځـیـدلـی یمـه ډیـر زه، د وطـن لـه جـدائـی نـه
پروان سنجد دره عقرب ۱۳۶۸

## عاقبت دسړی برم او باورخوری

چی په سرئی امین بولی آ دی سر خـوری
بی همته یـار پـه سـر دسـړی زر خـوری
چی په غولی دباور دی یار په کـور خوری
کنه داچی په ځنگـل دی ځناور خـوری
په بدعهـده یـار حسـاب ددښمـن مکـړه
ددښمن ځنی ړومبی تا پـه سنگـرخـوری
اعتماد چی په هـرکس او نـاکس کـاندی
خود په زړه به دخائن اشنا خنجر خوری
خلك گوره دشعـار پـه دام کـی بنـد کـا
ملتونه نن پـه چـل بانـدی رهبـر خـوری
دشعـار پـه رنگینـی شاهنشـاهـی کـا
شه روزی ئی پاچاهی چی په هـنر خـوری
په ماړه نس ستا دوری زوی چی غم خوری
په پالنگ دی شپه غمونه دمحشـر خـوری

بی لاری دی دبداصلو غونډی ستائی
په پاداش دی بیا حرمت دپیغمبر خوری
چی په خوائی نه ددین نه ددنیا شوم
دین دنیا می دامرشد اوس برابر خوري
داسلام په نامه خلك په څان ټول کا
چی لاس برشی دچا مال او دچا سرخوری
شتمنی ئی دملت دکور حساب ده
بی حسابه څه دننه څه بهر خوری
رنګینی ئی دشعار چی نظرتت کړ
اوس دخپلو شعارو سره ټکر خوری
درباریانو که پرون په چل خوړلم
دا دنن یاران می ګوره په اشرخوری
کام به څه کړی داسلام نوم به هم بدکا
داسلام په نامه وینی دبشر خوری
هر شعار چی دعمل سره سر نخوری
عاقبت دسړی برم او باور خوری
غوربند ۱۳۶۸ عقرب

## عبدالدینار خپه شو

حجاز ته څو دادی وعده وه مګر چیری ولاړی؟
څکه خو ستانه د حرم کړی اقرار خپه شو
ټول منتظروو انتظار هم ستا وعدی څارلی
اوس چی د چل خبره راغله انتظار خپه شو
لاره خو ټوله تاپه ماتو قسمو ډکه کړه
«شای»ته خلك ګوری وائی شوی اتبارخپه شو

# عزام شهید شو

داقطعه شعر می دشهید عبدالله اعزام په رابطه دهغه دمرگ دڅورونکی خبر ورو ستنه چی زه «دکوه دامن » په استالف کی دقو ماندان صاحب بشیر خان کره وم ویلی و .

دغمه تور، په ستر گو سرو چی ژړیده به مدام
دستا په څندومی شفق هغه ماښام شهـید شو
چی هر سبا دمجا هـد افغان غوږو تـه رسید
پـه نیمه لار دفلسطین هغه سلام شهید شو
چی دتکبیر په څرك ئی ستا و طن و طن گنڼلو
آ،مروردفلسـطین دستا پـه بام شهــید شو
چی څنډ نی فتحی ئی ستا دستر گوخوب وړی ؤ
افغانه ستا په غم شریك هغه نارام شهید شو
په وړی نس چی به ئی نفلو نه ستادفتحی کول
نن دجهاد آ تږی کام سـتـړی قیـام شهـید شو

خامو وعدو که دی ملت په زړګی پوخ کړ خیر
چی مخ کولی ئی ورسره هغه ریبار خپه شو

رنځورملت چی دبکسګی کی خپل درمل لټول
په زهرو سر چی شو نن خود دغه بیمار خپه شو

چی دی ملت پدي دوکه او نور دی شا ورته کړه
ملت په څه پخلا کوی هغه شعار خپه شو

چی به ئی د وینو په قیمت د ستا شعار پاللو
په شا په څم ګوری اشنا هغه بیپار خپه شو

ستا د سپکی تورو شپو ته خو شامندکړی په څه؟
چی د نجات زیری کوی هغه سهار خپه شو

انتقاد ډیر ته به د کوم مرور زړ ی نیسی
چی ئی زغملی غلطی هغه ایثار خپه شو

پریده راڅه یو حله بیا لار د حجاز ونیسه
وکړه وعده په کړی کار عبدالدینار خپه شو

## زعیم جبری !؟

دا په سل رنګو کي ورك بد رنګ چي ویني
لا به ورك کړي پدي قوم کي د وفاء رنګ

چي په لفظ او په وعده ئي تول خطا کړو
بد مي ایسي خلکه څکه داشنا رنګ

اقتداره، زه دي جارشم که ته نوي
ورك ومانه د روا اونار وا رنګ

چـــي تـول قـــوم ته په غرور ئي شاكړه ورته
غليمان مي په مخ كاري خود د "شا " رنگ
و دښمــــن ته ئي په ســـلو رنـــگو پــــر كړم
چــــــي بدل ئي كــــر دخپلي مـــــدعا رنــگ
شــــعارونه اميــدونه تـــول تـــروته شـــول
محـــفـليـــانو ته ئي چي فاش شو در يا رنگ
نور رنگي مي له نفاقه ! زعـــيـــم چـــيري!؟
بي بـــــارانه ځـكه زيـــر شي د گـيـا رنــگ
پــــر نا پـــر دواړه پسخيري شـعـــار يو دي
دلــتــه ورك دي د ثـــواب او د گـــنـا رنگ
چـــا د پـــلار چـــا د ادي دوستان تول كړي
بـيــا په دروا‌غو وركـــوي د حزب الله رنگ
دا د بـــــل تيمور اولاد دي مـــلك به خرڅ كا
له نــفـــاقــه ئي سـنــكاريـــړي د ســـودا رنگ
چي مـــلت مـــي هـــوسيان را تـــه اسير كا
بيــا كــه ځيـرم فـــايــده نه كا د جـفا رنگ
سره بـــلا به خـــداي تبـــا كا باك ئي مكړه
پـــدي قـــوم كـــي دمره شته ده د حيا رنگ
كـــه بــــــلا ده نـــو نـفـــاق لـــويــه بــــلاده
نـــور بـــه خـــه پـــوښتي له مانه د بلا رنگ
كـــه د ظـلــم شـپه تياره ده باك يي نشته
د افــغـــان تـــوري اخستـــي د ســـبا رنگ

دا د غـــم ورځ به اخـــتر نه شي په درواغو
څـــه کـــه سره ګـــرم دواړه لاســـه په حنا رنګ

# د مرشد درس

چې وطن ورنه سر غواړي او ســـر ساتي
لـــــه دا هسي با سواده بي سواد ښه
هيڅ حساب په باغ و راغ د چـا ونـکړي
چې ميوونه ئې وي ښه هغه هيواد ښه
جـــنازي ســـتا د قصـــر خـــوازي شـــوي
خود به نه آوري! د پلار مړو فرياد ښه
سر دي و خوري چې په سر يي خلك سر خوري
تـــــــر دا هسي سره بي سره سواد ښه
پسپسکو مي د راز په نوم کام ست کړ
پـــــيژنـــــدلي مي ده دا ام الفساد ښه
چې د بل کور ته اور نه وړي خپله سوزي
د مسکو ځني ســــــــل ځله بلګراد ښه
ورونـــه وژني مجـــاهـــد يم نه پـــوهـيږي
شماله شخي د خپل ديـــــــن په مراد ښه
سل توتي شوم دوست مي ورك کړ په جهان کي
مرشـــــــد درس راته راکړي د عناد ښه
سور او تور مي چې يو بل ته لاس په لاس کا
له دا هســـــــــي آزادي نـــــــا آزاد ښه
يو مي نن بل مي سبا وژني فـرق نه کا
د ذليل ژونده په مرګ که شمه ښاد ښه

# د شهرت او دبدبې هوس اخستې

چې ایمان او اقتدار سره یو ځای شي
غریـــبان به خود سپاره د شام سفر کا
را تازه به د یثرب شي تیر یـــادونه
چې په ځان باندې ړومبې په بل نظر کا
و کاغذ ته چې په تـــورو سلامي شي
سیف اللــــه لقب هــــغو ته مولا ورکا
سپاهي د اسامـــه بیا خلیـــفه شي
څوك به تاج د تواضع هسې په سر کا ؟
په عراق د گوډې اسـپې ذمـــه اخلې
هـــغه هلـــه ملتـــونه خـــپل رهبر کا
اقتدار چې یاراني کا تار په تـــار نو!
له نفاقه غوارې جوړ خپل اوبه خور کا
بې ایمانه اقتدار څوړند دیـــوال دی
هـــو بنیاران د داسې لارو نه ادر کا
د شهرت او دبدبې هـــوس اخستې،
به د هر چا نه ذلیل خدای په محشر کا
غلیمان یې د ملت په رنگ کې ورل کا
د عـــمـــر ځـــنې پـــوښتنه د عمر کا
چې پر مخ ورتو کړې لارې نه ئې وژنې
د ځانې غــــچ نه علې هسې گـــذر کا

د خوږ ژبو شــرمــخ زړو واکـــمنـــانو
له شامتــه مــولا نــور هم در په درکا

# بې حيا شوي

پــه سل خــوانه دي درانه او سپك جــلا كړل
اي بــي لــياري عــقدمــنه ته د چــا شوي
نــن د يــو، سبا د بل په ننګه زړه خــوري
اك ايــران يم پــه څــه مل په څه جلا شوي
په خوږه لاس په اوږه او په ترخه په مخه بڼه ئې
څومره ښه شوه چي په بده ورځ رسوا شوي
كــه رژيــم وي كــه تنظيم وي پــكي بر وي
پــه سره ورځ كــمي وايه څرنګه په شا شوي
پــه كنځلو دي خــولــه كف كا ورتــه هسي
چي په جيب ئي درته لاس كړ په خندا شوي
چــي په مخكي ئــې چورليږي په نعمت ئــې
پـــه زحمت لكه بــريښــنا هسي فــنا شوي
نــه پــوهــيږم د چــا دوست د چا دښمن ئي
پــه درهم بــانــدي خفه او هم پخــلا شوي
د شــعار د پــردي لانــدي مصلحت خوري
ګـــنهه دا چــي نــه د ديــن نــه د دنيا شوي
بــي دليله خلك ســتا يــي هــم ئــې كنځي
د مطلب ســره اشــنا شــوي بــي حــيا شوي

وی چی دسرواښانو مـــخ دی دحـرم و نیوه

ستا شاباسی ته دحجاز هغه پیغام شهید شو

چی داسلام په دردو غم هردم شهید غوندی ژ

هغه خواخوږی مسافر زوی داسلام شهـــید شو

چی دمظلوم افغان په څنګ ئی ټول عرب ټولول

بیت العرب کی داخلاص هغه مقام شهـــید شو

چی مړه قو مونه ئی پارول ستا دهمت په کیسو

هغه (جهاد) هغه (لهیـــب) هغه نظام شهید شو

دقدس فوځ به دکابل په فاتحینوروزم

په زړه خوږمن حامی ددی طرحی مرام شهید شو

خدایه غازیان به دبطحادچا په غر تو لیږی ؟

منبر خالی شو دعر بو لـــوی امام شهـــید شو

نور به دی څـــه سردردو مه مجـاهد وروړکیه !

دموره زیات په تازره سواند هغه عزام شهید شو

# سره داړه ماران

داچی له جنگه خلك کو کاری وهی
مړی پراتــه دی وینــی داری وهی
داپه کابل او کمــپو چیاکــی گوره
دسره ســتم ځنــی بغــاری و هی
دچانه تاو کاندی ازغـن سیـمو نـه
لــکه حیــوان دچــانه باری و هی
داړه مـــاران دکــریملین دی آشـــنا
داچــی کـــوورونه دچـــالاری وهی

# ته دی تل وی زما ملته

تـــــه دی تل وی زمـــا مـلته دځامـنو یــاددی تل وی
چی په مرگ ئی راژوندی کړو دادمړنو یاددی تل وی
په ســـحردآزادی کی چی مخو نـــه جـل و بـل کا
دابه وایو په سنگـر کی دگـــردجنـو یاددی تل وی
چه سباپه باغ وراغ وم کله بیل او کــله لــوروی
تا به هیر نکړم تو پکه دخپو نو یاددی تل وی
زه ئی هنداو خلیج څه کړم جار دخپلو هسکو غرونو
چی دښمن پکی حصار شو دلنو یاددی تـــل وی
لور په لاس چی د لته هلته دټانکونو مخ ته لاړل
دداهســـی تهـر مانو قــهر جنــو یــاددی تل وی
چی دخپل کلی او کور شم په مسجد او هد یره کی
په خلاص کومی به ناری کړم سره کفنو یاددی تل وی
کورخیمه، باغ بیابان شو،کورپه شاپنجاب کی گرځی
دهجــرت داســکیرلو بـــی و طنــویاددی تــل وی

پلارنی مړ، ورور ئی شهید هم دبندی ځوی پای وازی کا

دادغـــم پـــــه لمبه ســویو، لوغړنو یـــاددی تـــل وی

په کلاکی ئی ویاله وه دډنډوکی پسېی میل ځی

لمروهلو بادځپلو کرغـیړنـــو یـــاددی تـــل وی

دجلادلښتو لغتو ته ئی آخ دخولی و نه اوت

دزندان دځپل شویو دځر مـــنویاددی تل وی

دابی پلاره غاټو لان می که داوښکوپه باران کی

سباګوره چیری ګل شول داوښکلنو یاددی تل وی

داد ین او خُدای دپاره چی خواره په هردیار شول

ددی تورو لمرو هـلو کـر غیـړنو یـاددی تـــل وی

ننګیالی ددین په ننګ چی دهرځه نه بی نواشول

دهجرت داسکیرلـــو بی و طنـــو یـاددی تل وی

او سیلي او او ښکی ګالی سپیره سریتیم زماچی

په زړګی باندی ښادمن کادخوړلنو یاددی تل وی

دا ونه کړي چي طاغوت سره پخلا شم

او که نه د طاغوت مخکي به برباد شم

جادوګر د اقتدار ته مي مه سپاره

داسي نه چي پرده پوښ د کوم شداد شم

شهرت نه غواړمه ربه ته خو و کړي

چي نوم ورکي سپاهي ددي جهاد شم

به کرو ورو صفو کي مي زړه تنګ دي

موړ به کله په خوږو د اتحاد شم

دا مي عهد دي مولا خو ته مي، پاله

د ظالم سره به تير تر خپل مفاد شم

پیښور سنبله ۱۳۶۳

# پنا غواړي دوزخيان زمونږ

چې وعدي يې د ډوډي پرون كولي
په پټې كي غنم سوزي نن روسان زمونږ
چې د كور او د كاليو ټيكدار وو
هغو كور كړ په بمونو باندي وران زمونږ
نور د ښه گاوندي د لاپو به ئي څه وايم
په دوستي دوستي ئي لوټ كړ دين ايمان زمونږ
نور مي څه پوښتي د روس له ظلم زوره!
په برچو باندي قلم كړل ماشومان زمونږ
هر څه وائي گوره نوم د كمون مه اخله
چه په كانگو باندي ستړي شو وجدان زمونږ
چې ئي نن په كابل ويني كمون ندي جهنم دي
تر پنا غواړي سل ځله دوزخيان زمونږ

د هدف د جريدې له نشراتو څخه

# پیغور

محمد زمان «مزمل»
نهاد کابلي

د هدف د جريدې له نشراتو څخه

# پيغور

محمد زمان «مزمل»
نهاد كابلي

## اهــدا ،

دسپیني خبري خاوند ته چي
دتوریدلو ظالمـانو دخو نږیو
ستر گو په تو فان کي بیاهم
دحــق خــوا نــه پــریـږدي

محترما : السلام عليكم ورحمت الله و بركاته !

شعرونه دير دقدرووړدي صرف دوه نيم بيتونه
مي ننبنه كړي چه ځما له نظره دسيلاب خلاف وه بله
داچه ځيني پكبني بالكل په ځينو اشخاصو صريحه
حمله وه چه شعري ذوق ته ئي صدمه رسولي ده خو
حقيقت دادي چه زمونږ دتصور ځخه تاسي لوړ
ښكاره شوي ياست خداي مو موفق لره احترام .

مولوي صاحب محمد يونس ( خالص )

د شلخي ټوپك په شان دي پاتي وكړه
بـــازاري آشنا دلبند د هياهوي شوي
تـــا شهـيـد او د هغه يتيم ته شا كړه
په مزه د اقتدار چې كله پوي شوي
مـــا پـــه تـــا د سمـــرقند غچ اخستلو
ياره ته چې د اندخوي وي د اندخوي شوي
هند ته ما دربسي پل د احمد واخست
په نفاق كي خاصدار د وچ شاجوي شوي
څـــه دعـــوي بـــه د بـــوبكر د عمر كړي
خپل عمل ته دي نن گوره د چا زوي شوي
راســـره چـــې كـــومي هيلي د اسلام وي
د جفا په اور دي سوزنده الوي شوي
ستـــا نظـــر كـــي د شهيد ويني بي قدره
لكه اوښكي د يتيم په خاوره توي شوي
پـــت او پـــاس بـــه د ملـــت په تا څه ساتم
ته پخپله د دي لاري غـــل غـــدوي شوي

# زما عهد

خدايه هله به د ژوند په خوښو ښاد شم
چي وأصل د شـــهـــادت په لوړمراد شم
ما دنفس د بندگي وژغوره خـــدايه !
چـــي د ټـــولـــو غـــلامـــيـــونه آزاد شم

## د ملت نه دا بلا وتري

چې ملت جوړ شي نو دمخه ټول «انا» وتړي
«انا» ملت خوري د ملت نه دا بلا وتړی
«وحدت» «انا» دواړه یو ځای سره ټولیږي کله
چې سره یو شیه! ټول یو شیه! خودخوا وتړی
تاج د مشری په ولسو کي په یوه جوړیږي
چې سر مو نشته نو د سرپکړی، تر ملا وتړی
چې مي تر شا نوي ملت خدایږ ازاد مکړه هیڅ
چې وائي هسي د بیعت لاس ئی تر شا وتړی
پرته له ځانه چي ملت کي بل سړي نه ویني
هغه له خلکو نه هماغسي جلا وتړی
چې ته واي ته ئی زه وایم ته ئی کار د دواړو جوړ دی
چې وائی زه یم خوله د هسي ناروا وتړی
کربان له مشره چې د کام ځیني مشري کربان کړي
چې کام د ځان کربانوي ټول خوا په خوا وتړی

## د چا زوي شوي؟؟؟

لوي مي کړي لوئي را مکړي دا متل دي
که ته لوي شوي د اسلام په غیر کي لوي شړي